الإستفتاء
د اسلامي خلافت پر ضد
جنګ کوونکي څه حکم لري؟
مفتي ابو الياس حنيفي
انصار الخلافة
مؤسسة أنصار الخلافة
انصار الخلافة خپرندويه اداره

بسم الله الرحمن الرحیم

سریزه

دا یو څرګند حقیقت دی چې د کوم وخت راهیسې الله عز وجل دا دنیا آباده کړې ده، نو د هماغه مهاله د حق او باطل معرکه هم شروع شوې ده او دا معرکه تر قیامته پورې دوام لري او خلک په دوه ډلو وېشل شوي دي یوه ډله د حق پرستو خلکو ده چې دوی ته أولیاء الرحمن ویل کېږي او الله عز وجل ددغې ډلې مرسته کوي او بله ډله د باطل پرستو ده چې دوی ته أولیاء الشیطان ویل کېږي او ددوی مشري او سر پرستي شیطان کوي او شیطان غواړي چې ددوی دنیا او آخرت د خسران یا تاوان سره مخامخ کړي الله تعالی فرمايي:

**وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلاَلاً بَعِيدًا.** سورة النساء

او په بل ځای کې فرمايي: **الَّذِينَ آمَنُواْ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللّهِ وَالَّذِينَ كَفَرُواْ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ الطَّاغُوتِ فَقَاتِلُواْ أَوْلِيَاء الشَّيْطَانِ إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَانِ كَانَ ضَعِيفًا.** سورة النساء

خو متاسفانه چې په اوسني عصر کې ډېرې جهادي ډلې شتون لري او هر یوه ډله ددې خبرې دعوه کوي چې مونږ په نړۍ کې د اسلامي خلافت د قیام لپاره هڅه او کوشش کوو دا خبره ددوی حق ده خو دوی پرې د باطل اراده لري او دا ټولې ډلې پخپلو منځونو کې د یو بل سره سخت تضاد لري، هره ډله غواړي چې د خپلې خوښې مطابق جهاد وکړي بې له دې چې د جهاد په مقصد او اصولو ځان پوه او خبر کړي اکثره دغه ډلې په پاکستان کې ډېرې زیاتې دي چې د پاکستان د څارګرې ادارې لخوا اداره کېږي او حمایت یې کوي تر څو دغه مرتده څار ګره اداره د دغه تش په نامه جهادي ډلو پر مټ خپله ناوړو او شومو اهدافو ته ځانونه ورسوي ددغه ډلو مشران مزې چړچې کوي او کشران یې یو او بل ځای بې هدفه وژل کېږي او بزنس پرې روان دی او د کشرانو د جهالت، غفلت او ساده توب څخه ناوړه استفاده کوي، خو په مجموع کې دوی ټول د اسلامي خلافت پر ضد دي او د حقیقي اسلامي خلافت پر مفهوم بالکل پوهېږي نه، د خلافت او امارت تر منځ توپیر هم نه شي کولی نه د أهل الحل والعقد شوری پېژني او نه د خلیفه شروط که آي – ایس – آي وايي چې ورېځ ده دوی هم وايي چې بالکل همداسې ده او که هغوی وايي چې اسمان شین دی نو دوی وايي چې بالکل شین دی د دغو ډلو څخه یوه هم د اسلامي امارت په

نامه يوه مزعومه ډله ده، چې پاکستان ددوی د نوم څخه ډېره قوي او اغيزمنه استفاده وکړه او دغه ډلې څوارلس پنځلس کاله د پاکستان د څارګرې ادارې لپاره ډېرې بې دريغه قربانۍ ورکړې او بې له دې چې کومه نتيجه تر لاسه کړي د بې ګناه خلکو وينې يې تويې کړې او دا سلسله لا دوام لري کله يې د جنګ ميدان ته راکاږي او کله يې د مذاکراتو مېز ته او د ټيشو پيپر په شان يې استعمالوي، ځکه خو الله عز و جل دغه ډلې ته تمکين فتح او نصرت نه ورکوي دا ځکه چې دوی د طواغيتو خدمت ته ملا تړلې او په پوره اخلاص سره د پاکستان د مرتدې څارګري ادارې د تقويت لپاره شپه او ورځ د بې ګناه خلکو وينې تويوي او اوس يې د خپلو بادارانو په اشاره د اسلامي خلافت د مجاهدينو پرضد عمليات پېل کړل مجاهدين يې شهيدان او زخميان کړل او او د اسلامي خلافت ځېني مجاهدين بې اسيران کړل او مذاکراتو ته هم نه کېناستل نو د اسلامي خلافت لښکرې انتقامي بريد ته مجبوره کړی شوی او په ډېرو ځايونو کې دوی ته د اسلامي خلافت لخوا غاښ ماتوونکی ځواب ورکړی شو او ددوی څخه يې ډېرې سيمې تصفيه کړې او اسلامي خلافت به د داسې باغيانو پر خلاف خپل مقاومت جاري ساتي او د تصفيوي عملياتو دا لړۍ به دوام لري تر څو ددوی د شرڅخه د خراسان ولايت خلک نجات تر لاسه کړي او د آرام او هوسا ژوند خاوندان شي. دا چې د بعضې خلکو سره لا اوس هم ددغه مزعوم امارت په هکله ځينې شبهات شته چې ددوی پر خلاف به د جنګ کولو څه حکم وي حال دا چې د اسلامي خلافت پر ضد لومړی اقدام همدوی کړی نو مونږ مجبور شو چې ددوی په هکله دا فتوی وليکو تر څو خلک د دغه مزعوم امارت حقيقت او اصلي څېره وپېژني.

نو ستاسې توجه لاندې فتوې ته را اړوو.

بسم الله الرحمن الرحيم

**سوال:** د اسلامي خلافت خلاف جنګ کوونکي څه حکم لري؟ او په ځانګړې توګه هغه ډوک چې ځان ته اسلامي امارت وايې او بيا د اسلامي خلافت پر خلاف جنګ کوي؟

**جواب:** الحمد لله رب العالمين ولا عدوان إلا على الظالمين والصلاة والسلام على من بعث بالسيف رحمة للعالمين أما بعد: دا چې اسلامي خلافت يو شرعي او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د نبوت پر منهاج يا تګلارې برابر خلافت دی، أمير المؤمنين او خليفة المسلمين أبوبكر البغدادي الحسيني القرشي حفظه الله په شرعي شروطو برابر خليفه دی، مخکې له دې چې د سوال جواب ته راشو لاندې ټکو ته بايد پاملرنه وشي:

۱- امامت او خلافت په څلورو طريقو سره منعقد کېږي:

۱- د أهل الحل والعقد په اختيار لکه د ابوبکر صديق رضي الله عنه بيعت د رسول الله صلى الله عليه وسلم د وفات څخه وروسته.

۲- د سابق امام په اختيار لکه څرنګه، چې ابوبکرصديق رضي الله عمر فاروق رضي الله عنه خليفه مقرر کړ، ځکه چې د هغه سره يې عهد کړی و.

۳- مخکنی امام يوه شوری جوړه کړي، لکه څرنګه چې عمر فاروق رضي الله عنه شپږ کسيزه شوری جوړه کړې وه او بيا د عمر رضي الله عنه د وفات څخه وروسته همدغه شوری عثمان بن عفان رضي الله عنه د خليفه په توګه و ټاکلو.

۴- د زور او سلطې له لارې يو کس خپل ځان د خليفه په توګه و ټاکي او د دغه منصب لپاره اهل وي، خو دا په هغه صورت کې چې امام او خليفه د مسلمانانو شتون ونه لري نو دغه خليفه به بيا واجب الاطاعت وي. التشريع الجنائي.

**۱– امام ابن حجر رحمه الله وايې:** وقد أجمع الفقهاء على وجوب طاعة السلطان المتغلب والجهاد معه وإن طاعته خير من الخروج عليه. اهـ فتح الباري ج۱۳ ص۷.

د فقهاؤ اجماع ده په اطاعت کولو د هغه خليفه چې د زور له لارې خليفه شوی وي او د هغه په ملګرتوب کې جهاد کول او هغه اطاعت له دې څخه غوره دی چې د هغه پر خلاف خروج وشي.

لهذا أبوبكر البغدادي حفظه الله هم په شوری د أهل الحل والعقد او هم په زور او هم د سابق خليفه أبو

عمر البغدادي په عهد سره خليفه دی لهذا اطاعت يې واجب دی او د ده پر خلاف جنګ کول يو څرګند بغاوت دی.

**٢- شهيد ملت اسامه بن لادن رحمه الله وايې**: يقينا مسلمانان په دې خوشحاله شول چې جهادي تنظيمونو چې مقاتلين دي د بعضې شيوخو او قبائلو سره چې د توحيد کلمې د إعلاء په خاطر راپاڅېدلي. فبايعوا الشيخ الفاضل أبا عمر البغدادي أمير دولة العراق الإسلامية. كلمة الشيخ بعنوان: السبيل لإحباط المؤامرات.

دوی بيعت وکړ د أبوعمر البغدادي سره چې دعراق د اسلامي دولت امير دی.

**٣- الشيخ أيمن الظواهري هداه الله وايې**: الدولة خطوة في سبيل إقامة الخلافة أرقى من الجماعات المجاهدة، فالجماعات يجب أن تبايع الدولة وليس العكس. اللقاء المفتوح ٢٠٠٨ الحلقة الثانية.

د أبو عمر البغدادي اسلامي دولت د اسلامي خلافت د قيام لپاره يو ګام دی، چې دا کار ډېر لوړ دی د نورو جهادي ډلو څخه، نو پر ټولو ډلو دا واجب دي چې د اسلامي دولت سره بيعت وکړي نه برعکس.

**حاصل:** دا چې أبو عمر البغدادي رحمه الله او شوری د أهل الحل والعقد أبوبکر البغدادي **حفظه الله** ټاکلی دی نو د نوموړي اطاعت د يو شرعي خليفه په حيث واجب دی.

**اعتراض:** بعضې خلک وايې چې د أبوبکر البغداي حفظه الله سره ټولو خلکو بيعت نه دی کړی يا په بل عبارت ټولو جهادي ډلو نوموړی نه دی ټاکلی؟

**جواب:** د ټولو خلکو جمع کېدل يا د ټول أهل الحل والعقدلخوا مقررول کوم شرط نه دی.

**امام نووي رحمه الله وايې**: أما البيعة فقد اتفق العلماء على أنه لا يشترط لصحتها مبايعة كل الناس ولا كل أهل الحل والعقد وإنما يشترط مبايعة من تيسر إجماعهم من العلماء والرؤساء ووجوه الناس. اهـ شرح النووي على مسلم جـ٦ صـ٢٠٩.

هرچې بيعت دی نو د علماؤ په دې اتفاق دی چې د بيعت د صحت لپاره د ټولو خلکو بيعت شرط نه دی او نه د ټولې شوری د أهل الحل والعقد بلکې شرط دا دی چې بيعت وکړي هغه څوک چې اسان وي جمع کېدل د هغوی په دغه ځای کې د علماؤ او د مخورو او مشرانو خلکو څخه.

**٢- امام بدر الدين بن جماعه رحمه الله وايې**: ولا يشترط في أهل البيعة عدد مخصوص بل من تيسر حضوره عند عقدها ولا تتوقف صحتها على مبايعة أهل الأمصار بل متى بلغهم لزمهم الموافقة. اهـ تحرير الأحكام في تدبير أهل الإسلام صـ٥٣.

په اهل بيعت کې دا خبره شرط نه ده، چې دوی دې معلوم عدد وي بلکې هغه څوک چې حضور يې آسان وي په وخت د بيعت کولو کې چې د بيعت د صحت پورې، د ټولو ښارونو د خلکو بيعت کول متوقف نه دي بلکې کله چې ورته دا خبر ورسېږي چې د خليفه سره بيعت وشو، نو بيا پرې موافقت لازم دی.

## د أبوبکر البغدادي حفظه الله بيعت او نصرت کول واجب دي

**١- امام رشيد رضا وايې**: ومتى تمت المبايعة وجب على المبايعين وسائر الأمة بالتبع لهم الطاعة للإمام في غير معصية والنصرة له وقتال من بغى عليه. اهـ الخلافة صـ٣٤.

کله چې د خليفه سره بيعت تمام شو، نو په بيعت کوونکو او ټولو خلکو د خليفه اطاعت په غير معصيت کې واجب دی او د هغه نصرت به کوي او د هغه چا سره به قتال کوي چې پر خليفه يې خروج کړی وي.

**٢- رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايې**: ((إنما الإمام جنة يقاتل من ورائه ويتقى به)). البخاري٩٥٧.

امام د يو ډال حيثيت لري، چې د هغه تر شا به قتال کېږي او په هغه سره به ځان ساتل کېږي.

امام ابن بطال رحمه الله د المهلب څخه د دې حديث په شرح کې نقل کړي: فمن خرج عليه وجب على جميع المسلمين قتاله مع الإمام العدل نصرة له. شرح البخاري للإمام البطال جـ٥ صـ١٢٨.

څوک چې په شرعي خليفه باندې خروج وکړي، نو په ټولو مسلمانانو قتال واجب دی چې د دغه خليفه څخه دفاع وکړي له وجې د نصرت کولو د هغه سره.

**امام نووي رحمه الله وايې**: أي يقاتل معه الكفار والبغاة والخوارج وسائر أهل الفساد. اهـ المنهاج جـ١٢ صـ٢٣٠.

د خليفه د دفاع په خاطر به د کفارو، باغيانو او خوارجو او نورو فساديانو سره قتال کېږي.

**امام الماوردي رحمه الله وايې**: وإذا قام الإمام بحقوق الأمة فقد أدى حق الله فيما لهم وعليهم ووجب له عليهم حقان، الطاعة والنصرة ما لم يتغير حاله. الأحكام السلطانية صـ٤٢.

هر چې يو امام يا خليفه د امت حقوق اداء کړي نو په تحقيق سره هغه د الله تعالى حقوق اداء کړل په هغه څه کې چې د دوی لپاره وو او په دوی لازم وو، نو په دوی باندی د خليفه دوه حقونه واجب دي د هغه

اطاعت کول او د هغه نصرت کول، تر څو چې یې حال بدل شوی نه وي.
د پورتني نصوصو او د علماؤ د اقوالو څخه دا معلومه شوه چې د أبوبکر البغدادي حفظه الله بیعت واجب دی او د هغه سره بیعت نه کول کبیره ګناه ده، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: ((من خرج من الطاعة وفارق الجماعة فمات، مات میتة جاهلیة)). مسلم۱۸٤۸.
څوک چې د امام د طاعت څخه ووتلو او د مسلمانانو د جماعت څخه جدا شو او مړ شو، نو مرګ یې د جاهلیت دی.

## د اسلامي خلافت سره جنګ کوونکي څوک دي؟

دا هغه کسان دي چې د کفارو په صف کې ولاړ دي او د هغوی سره اتحادیان دي لکه عربي ملکونه، شیعه ګان او روافض، چې د دوی په کفر او ارتداد کې هېڅ شک نشته ځکه حدیث کې راځي: ((حَلِيفُ الْقَوْمِ مِنْهُمْ)).ترون کوونکی دیوقوم سره ددوی د جملې څخه شمېرل کېږي. او دا آیت پرې هم دلیل دی ((وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ)). هر چا چې له تاسې څخه د دوی (یهودو او نصاراؤ) سره دوستي وکړه، نو دا هم د هغوی څخه دی یعنې د هغوی په شان کافر دی.
لکه د شام جیش الحر او داسې نور سیاسي ډلې چې د کفارو لخوا حمایه کېږي.
هغه کسان چې ځان ته مجاهدین هم وایې، خو بلاعمة العصر ملایانو دوی خطاء کړي وي یا د پاکستان د مرتدې څارګرې ادارې آی - ایس - آی په اشاره د اسلامي خلافت پر خلاف جنګ کوي، نو دا بیا دکفر حامیان او هم باغیان دي او قتل یې واجب دی، تر څو چې یې د الله تعالی امر ته غاړه نه وي ایښې، که ومنو چې دا خلک مخلص او عقیدې یې د توحید دي.نو بیا یې هم مرګ واجب دی، ځکه چې دوی دشرعې خلیفه څخه بغاوت (سرغړونه)کړې ده،او داهر چاته معلومه ده چې دغه مزعوم امارت دقبوریت، صوفیت،او د حلولیت عقاید لري .دا خلک دامام ابوحنیفه رحمه الله په عقیده نه دې روان هسې د امام صاحب رحمة الله علیه د نوم څخه ناوړه استفاده کوي.لکه چې ددوی یو مشرخلیل احمد سهارنپوري وایي: چې مونږ په عقیده کې دامام ابوحنیفه مقلدین نه یو .المهند عقاید علماء دیو بند ص ۱۱.
که په مزعوم امارت کې مخلص موحدین او د قرآن او سنت تابعدار خلک هم وي او د اسلامي خلافت پر ضد پاڅون وکړي نو باغیان ګڼل کیږي او قتل یې واجب دی،دلیل پرې د الله تعالی دا قول دی:

**۱- دليل:** ((وَإِن طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا فَإِن بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّى تَفِيءَ إِلَى أَمْرِ اللَّهِ)). سورة الحجرات.

که دوه ډلې د مؤمنانو څخه په خپل منځ کې قتال وکړي، نو د دوی تر منځ صلح وکړئ نو که يوې ډلې پر بلې ډلې زياتی وکړ، نو تاسو د هغه ډلې سره قتال وکړئ چې زياتی يې کړی دی، تر څو چې دوی د الله فيصلې ته غاړه کېږدي.

آيت دليل دی چې د اسلامي خلافت پر خلاف جنګ کوونکي که صحيح العقيدة هم وي او بغاوت وکړي قتال ورسره واجب دی، تر څو چې د خلافت تابع نه شي.

**۲- دليل:** علي بن أبي طالب رضي الله عنه چې کله خليفه شو، نو نورو ملکونو ته يې اميران ولېږل، شام ته يې هم ولېږل؛ خو معاويه رضي الله عنه د هغه د بيعت څخه انکار وکړ. د رسول الله صلی الله عليه وسلم پېش ګويي (د وحي په ذريعه) د معاويه رضي الله عنه ډله باغي وګرځوله چې عمار رضي الله عنه ته رسول الله صلى الله عليه وسلم وويل: ((تَقْتُلُكَ الْفِئَةُ الْبَاغِيَةُ)). يعنې تا به باغي ډله وژني.

او عمار بن ياسر رضي الله عنه د علي رضي الله عنه سره ملګری و. وګوره الهيعة في التذكير بلزوم البيعة ص١٣.

**۳- دليل:** کله چې يزيد بن معاويه وفات شو، نو عبد الله بن الزبير رضي الله عنه سره خلکو په مکه کې بيعت وکړ، بيا يې نورو ښارونو ته خلک د بيعت لپاره ولېږل ټولو بيعت وکړ؛ خو د دمشق خلکو بيعت ونه کړ، نو عبدالله بن الزبير رضي الله عنه د دمشق خلک باغيان اعلان کړل.

**امام ابن قدامه رحمه الله وايي:** فإن عبد الملك بن مروان خرج على ابن الزبير فقتله واستولى على البلاد وأهلها. المغني ج٨ ص٥٢٧.

عبد الملک بن مروان په شرعي خليفه ابن الزبير رضي الله عنه باندې خروج وکړ، هغه يې قتل کړ او په ښارونو او خلکو يې قبضه وکړه.

د مذکوره دلائلو څخه دا معلومه شوه، چې هر څوک د اسلامي خلافت پر خلاف بغاوت کوي او د هغې پر خلاف قتال کوي هغه باغي او قتال ورسره په دغه نصوصو واجب دی، دا هغه وخت که دغه باغي تنظيم د قتال ابتداء نه وي کړي او عقيدوي مرتدين نه وي.

١- اوس خو د آي-ايس-آی مزعوم امارت د اسلامي خلافت پر خلاف لومړی اقدام دوی کړی.

۲- لارې به يې بندولې چې بيعت ته څوک لاړ نه شي ((وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ)).

۳- تر دې چې خوراکي مواد چې د اسلامي خلافت مجاهدينو ته روان وو دهغوی څخه ونيول چې دا کار د کفارو پر خلاف هم په کار نه دی، ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم چې کله د شام څخه غنم د مکې مشرکينو ته راتلل صحابه کرامو هغه بند کړل؛ خو رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل چې دا پرېږدئ.خو د مزعوم امارت کسانو د دې سربېره د هغوی څخه د اسلحو ګاډي هم ونيول.

د دې ټولو خبرو باوجود د اسلامي خلافت د خراسان ولايت مجاهدين بيا هم چپ او خاموش وو، خو وايي چې مردکي ته چا وويل چې ولې دومره تېز ځې؟ هغه وويل چې د شا لخوا راپسې زور دی، نو د دوی پسې د آی - ايس - آی زور دی لهذا دوی باغيان، حمله کوونکي او د بيعت نه کوونکي دي، چې دا ټول ددې سبب دی چې بايد ددوی پر خلاف قتال وشي، خو لومړی د دوی څخه لاندې سوالونه کوو:

۱- د افيوم (اپين) او پوډرو څخه عشر اخيستل په کوم دليل جائز شول؟ حال دا چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: ((كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ)). صحيح الجامع ٤٥٥٠.

هر نشه کوونکی يا نشه يې شی حرام دی.

او په بل ځای کې جابر رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: ((إِنَّ اللَّهَ إِذَا حَرَّمَ شَيْئًا حَرَّمَ ثَمَنَهُ)). أحمد جـ٤ صـ٢٤٨ وابن حبان جـ١١ صـ٣١٣ والدراقطني جـ٣ صـ٧.

الله تعالی چې کوم شی حرام کړی وي نو پيسې او ګټه يې هم حرام کړې ده.

او دا حديث پرې هم دليل دی: ((إِنَّ اللَّهَ طَيِّبٌ لَا يَقْبَلُ إِلَّا الطَّيِّبَ)).(مسلم وغيره)

الله پاک ذات دی او نه قبلوي مګر پاک شی.

ددې څخه معلومه شوه چې هر نشه يې شی حرام دی.اوحرامو ته حلال ويل کفر دی.

شيخ الاسلام ابن تيمية فرمايي:والإنسان متى حلل الحرام المجمع عليه او حرم الحلال المجمع عليه كان كافرا باتفاق العلماء. مجموع الفتاوى جـ٣ صـ٢٦٧.

کوم انسان چې اتفاقي حرام حلال وګڼي او اتفاقي حلال حرام وګڼي نو په اتفاق دعلماؤ سره دغه شخص کافر دی.

۲- د مزعوم امارت په دور کې عبد الحکيم مجاهد په ملل متحد کې ددوی استازی و او ددې په ارمان

هلته ناست و چې کله به ددوی امارت د ملل متحد د کفري اداري لخوا رسمي کېږي حال داچې الله تعالی فرمایي: ((وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولاً أَنِ اعْبُدُواْ اللّهَ وَاجْتَنِبُواْ الطَّاغُوتَ)) آیا دا طاغوت سره مرسته او همکاري نه ده آیا دا د طاغوت ملا مضبوطول نه دي او د هغوی سره موالات کول نه دي؟ د امارت د سقوط د آخري لحظې پورې دوی کوشش کولو تر څو په ملل متحد کې عضویت تر لاسه کړي کومه چې یوه کفري اداره ده او قوانین یې د اسلام پر خلاف دي.

۳- د پاکستان مرتد حکومت چې په امارت کوم بزنس وکړ چې یو طرف ته یې په امریکایانو خرڅول او بل طرف ته یې افغانستان ته د جهاد لپاره رالېږل ددې شپږ واسکټو او نسواریانوتر اوسه پورې د پاکستان حکومت په ارتداد سر خلاص نه شو او ددوی په غلامۍ او خدمت کې تر اوسه پورې لګیادي او د آي – ایس – آي مرتدې ادارې د تقویت لپاره لګیا دي او ددوی څخه براءت نه کوي بلکې د دغې مرتدې او ناوړه شبکې عبادت یې شروع کړی دی حال دا چې د ملت ابراهیمي شعار خو دا دی: ((إِنَّا بُرَاء مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَاء)).سورة الممتحنة

۴- په قطر کې د مزعوم امارت جنډه پورته کول: حال داچې د قطر حکومت د امریکې اډه ده. دلته تاسو وایئ چې د افغانستان حکومت امریکایان راوستي دي جهاد ورسره فرض دی؛ خو هلته یې بیا اډه ده تاسو په کې اوسېږئ، د قطر ملک ته تاسو د چا په طیاره کې لاړئ؟ آیا دغه مرتد حکومت سره دوستي د هغوی په ارتداد چپوالی نه دی؟

۵- د سعودي مرتد حکومت چې تاسو سفیر ورلېږلی و هغه ملک دی چې د امریکې د طیارو ټول تېل دوی ورکوي او په دنیا کې پر مجاهدینو بمبارونه کوي، تاسو هغوی ته ولې مرتد نه وایئ، ومن لم یکفر الکافر أو شك في كفره فهو كافر بیا څه معنی؟

همدارنګه د ((وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ)). او نورو آیاتونو څه معنی شوه؟

۶- تاسو چې بار بار دا بیانات خپروئ چې زمونږ جهاد د افغانستان د خلاصون پورې منحصر دی او د ګاونډیانو سره ښه سلوک غواړو؟ آیا د پاکستان کارونه چې د تاسو سره یې وکړل ملا عبد السلام ضعیف یې امریکایانو باندې خرڅ کړ، پوښتنه د هغه څخه وکړئ بیا هم تاسو د پاکستان ونډو ته ناست یاست، او د پاکستان د مرتد حکومت عبادت کوئ اسلام خو لاړو خو هغه افغاني غیرت در څخه هم

ختم شو. نن خو جهاد د هر اصلي کافر او مرتد سره فرض عين دی او دا صرف په افغانستان او کابل کې نه بلکې پاکستان او اسلام آباد (اسلام برباد) کې هم.

آیا دغه مرتد حکومت استاد یاسر په ډېرې بې رحمۍ سره شهید نه کړ؟ چې ستاسو ښې لاس و آیا دکتب عليكم القصاص په تقاضا باندې دده بدل اخيستل په تاسو فرض نه دي؟ که نه هغه مو پر مرتد حکومت خرخ کړ؟

۷- تاسو چې وايئ د حدودو او سرحداتو حفاظت به کوو، اسلامي خلافت کې کوم ځای پولې او سرحدات راغلې حال دا چې الله تعالى فرمايي: ((إِنَّ هَذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً)). هېڅ پاسپورټ شناختي کارډ او تذکرې ته حاجت نشته دا خو د یهودو او صلیبیانو د تفرقې اچولو وسیله ده چې مسلمانان یې سره په وطني، ژبني او سمتي شکلونو ويشل.

۸- محمدطيب آغا چې يومجوسي او رافضي هېواد ته تللې و آيا دا د مرتدينو سره موالات نه دی؟ حال دا چې شيعه ګان داحنافو په نزد په اجماع سره کافر دي.وګوره حاشية ابن عابدين شامي ج۷ ص۱۶۲ دشيعه ګانو په نزد ټول صحابه کرام مرتدين دي پرته له دريوڅخه مقداد ابن الأسود، أبوذرالغفاري، سلمان الفارسي رضي الله عنهم.اوګوره رجال الكشي. ص۱۲

بلکې شيعه ګان ټول سنيان نجس او ديهودو او نصاراؤ څخه يې بد کفار ګڼي.وګوره الأنوار النعمانيه للجزائري الشيعي. ج۲ ص۲۰۶

نودداسې خلکو سره موالات (دوستي) کول دصحابه کرامو سره دشمني نه ده؟

لاندې عکس د مزعوم اسلامي امارت له ويب پاڼې څخه اخيستل شوی دی ويې ګورئ:

ایران ته د یو لوړ پوړي پلاوي د سفر په اړه د اسلامي امارت د ویاند څرګندونی

24
Share

په دې وروستيو کې د اسلامي امارت يو لوړ پوړي پلاوي د اسلامي امارت د سياسي دفتر د مشر محترم محمد طيب آغا په مشرۍ ګاونډي هېواد ايران ته يو سفر درلود، د اسلامي امارت پلاوي په دې سفر کې د ګاونډي هېواد ايران له چارواکو سره د خپل هېواد افغانستان د فعلي وضعيت، سيمې، اسلامي نړۍ، او په ايران کې د شته افغان مهاجرينو د حالاتو په اړه خبرې کړې دي.

د يادونې ده چې نوموړی سفر د هغو عادي سفرونو يوه برخه ده چې د اسلامي امارت پلاوي يې وخت په وخت د نړۍ مختلفو هېوادونو ته د دوه اړخيزه موضوعاتو څېړلو، اړيکو جوړولو، پراخولو او ټينګولو په موخه تر سره کوي.

د اسلامي امارت پلاوو له دې وړاندې جاپان، فرانسې او چين ته هم سفرونه کړي، او په راتلونکې کې به هم دا لړۍ روانه وي.

ذبيح الله مجاهد داسلامي امارت وياندوى

۱/۸/۱۴۳۶هـ ق

۳۰/۲/۱۳۹۴هـ ش ـ 2015/5/19م

۹- داچې اوس ستاسې مشران په کمونستي هېواد چين او د قطر په مرتد هېواد کې دصلحې خبرې کوي تاسو به هغه مخلص شهيدانو، فدايانو، مجروحينو او دافغانستان نورو عوامو شهيدانو ته څه ځواب وا ياست؟

معلومه شوه چې ستاسې جنګ دچوکۍ او د آی - ايس - آی د تقويت او مفاداتو لپاره و.

آيا تاسو ددې آيت مصداق و نه ګرځېدئ؟ والذين كفروا يقاتلون في سبيل الطاغوت.يعنې هغه کسان چې کافران دي هغوی دطاغوت (موجوده مرتد حکومتونه) په لار کې جنګ کوي.

**۱۰- دمزعوم اسلامي امارت بعضې داسې اقوال او افعال چې په ارتداد دلالت کوي**:

۱- د پګواش په څېړنيز کانفرانس کې د مزعوم اسلامي امارت د سياسي دفتر لوستل شوي اعلامېې (۲۰۱۵م / ۵ / ۲) (۱۴۳۶هـ /۱۳/۷) څخه چې مهم ارتدادي نقطې يې دا دي:

۱- زه د ښاغلي پګواش د نړيوالې موسسې جنرال پاولو کوټا څخه مننه کوم.

☜ آيا د يو محارب سره جنګ او د بل څخه مننه کول او هغه ته د احترام الفاظ استعمالول ارتداد نه دی؟

بيا وايې:

۲- د قطر د مسلمان ورور حکومت څخه هم مننه کوم.

☜ مخکې ذکر شو چې قطر د امريکې اډه ده او د امريکې سره يې پخه دوستي ده او اتحادي ملګرې يې دی)، نو مرتد ته ورور ويل ارتداد نه دی؟

بيا وايې:

۳- د اسلامي اصولو او افغاني عنعناتو په چوکاټ کې د ښځو او نارينه و لپاره د تعليم حق او د بيان ازادي پکې موجوده وي.

☜ آيا که افغاني عنعنات د اسلامي شريعت سره په ټکر کې و نو بيا څه حکم دی؟

بيا وايې:

۴- مونږ په زغرده وايو چې د اساسي قانون مسوده به د حريت په ازاده فضاء کې د افغاني پوهانو لخوا ترتيبيږي، بيا به ولس ته د تاييد دپاره وړاندې کيږي.

☜ آيا اسلامي قانون راوستل، هغه پلي کول د ولس تاييد ته کوم حاجت لري، که نه نو اساسي قانون هم پارلمان ته د تاييد دپاره وړاندې شوی دی. الله تعالی فرمايي: ((إِنِ الْحُكْمُ إِلاَّ لِلّهِ أَمَرَ أَلاَّ تَعْبُدُواْ إِلاَّ إِيَّاهُ)).

ترجمه: نه دی اختيار د فيصلو مګر صرف د يو الله، هغه امر کوي چې تاسو عبادت مه کوئ (فيصلې مه وړئ)، مګر هغه ته.

بل ځای کې فرمايي: ((وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلاَ مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَن يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلاَلاً مُّبِينًا)).

ترجمه: او نه دي جائز يو مؤمن سړي او مؤمنې ښځې ته کله چې الله او د هغه رسول د يو کار فيصله وکړئ چې وي دې دوی لره بيا خپله خوښه د هغوی د کارونو. او چا چې د الله او د هغه د رسول نافرماني وکړه نو په تحقيق دی ګمراه شو په ګمراهۍ ښکاره سره.

☜ جمهوري قوانين هم د پوهانو لخوا ترتيبيږي او بيا پارلمان ته وړاندې کيږي، نو څنګه د ملا خر پاک شو او د امي مردار شو. يعنې ستاسو د پوهانو جوړ کړی قانون ولس ته د تاييد احتياج لري خو د جمهوريانو هم خلکو ته احتياج لري، نو د دواړو څه فرق؟

۱۰- تاسو مزعوم اسلامي امارت يو طرف ته د جمهوريت والاؤ سره جنګ کوئ او بل طرف ته د يو جمهوري مرتد مرسي په اعدام کولو خفګان ښکاره کوئ وګوره د مزعوم اسلامي امارت ويب پاڼه:

د مصر دقانوني ولسمشر ډاکټرمحمد مرسي د اعدام د پريکړې په اړه د افغانستان د اسلامي امارت اعلاميه

19-05-2015

د تېرې شنبې په ورځ چې د ۲۰۱۵ د ۵ له ۱۶ نېټې سره سمون خوري، د مصر د کوتايي رژيم محکمې د حماس ډلې په ځينو غړيو او د اخوان المسلمين د ځينو مهمو مشرانو تر څنګ د مصر په پخواني قانوني ولسمشر ډاکټر محمد مرسي د اعدام ظالمانه حکم وکړ.

آيا د يو مرتد په اعدامولو خفګان ارتداد نه دی؟ الله تعالی فرمايي: ((فَلاَ تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ)).

ترجمه: ته خفګان مه کوه په کافر قوم باندې.

او زمونږ د فقه حنفي معتبر کتاب مبسوط کې وايي: فأما المرتدون فلا يقبل منهم إلا السيف أو الإسلام. المبسوط ج۱۰ ص۱۱۶.

ترجمه: هر چې مرتدين دي، پس نه به قبليږي له دوی څخه مګر توره (قتل) او يا اسلام راوړل.

۱۲- نن چې تاسې د مرتد مولانا فضل الرحمن دفاع کوئ بلکه د هغه جنډه په وزيرستان کې ستاسو په هر مرکز لګېدلې وي، هغه هم اسلام د جمهوريت له لارې غواړي او اشرف غني يې هم غواړي نو ستاسې او د هغوی په مينځ کې څه فرق؟ ځکه چې جمهوريت له پنځوس وجو کفر او ارتداد دی.

د مرتد فضل الرحمن د ارتداد دليل د جمهوريت منل دي لاندې مشال راډيو ويب پاڼه وګورئ:

**تنبيه:** د ملا محمد عمر مجاهد حالت به الله ته وسپارو خو اوسنی امارت د ارتداد ښکار شوی چې د کفارو او مرتدينو او ايراني مجوسيانو سره د روغې جوړې او دوستۍ لپاره هلې ځلې يې تاسو په خپلو سترګوو ليدلې.

په پای کې درته دا وايو چې راشئ او الله ته توبه وباسئ، خپل مرګونه مه خرابوئ او د اسلامي خلافت تر شا ودرېږئ او خليفة المسلمين أبوبكر البغدادي سره بيعت وکړئ او د يهودو او صليبيانو او روافضو زړونه وچوئ، که نه نو الله تعالی فرمايي: وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ الْغَالِبُونَ.

## وفي الختام أدعوكم إلى المباهلة أيتهاالإمارة الإسلامية المزعومة

واني مبتهل الى الله مباهل لكم: اللهم إن كانت الإمارة الإسلامية المزعومة على منهج كتابك وسنة نبيك وسلف الأمة تقيم في حياتها شرعك وتقيمه في حياة الناس وتوالي أولياءك وتعادي أعداءك وتجاهد عن دينك وشرعك فسددها وثبتها ومكن لهافي الأرض وعجل لها الفرج من حيث لاتحتسب قولوا آمين ياأيهاالمسلمون.

اللهم وإن كانت الإمارة الإسلامية على منهج غير كتابك، وسنة نبيك، وسلف الأمة توالي أعداءك، وتحارب أولياءك، وتداهن في دينك، وتفتن الناس عن شرعك، فاقتل قادتها، واذهب ريحها واهد شبابها، وخذ إلى الحق بأيديهم، قولوا آمين ياأيهاالمسلمون.

اللهم منزل الكتاب، مجري السحاب، سريع الحساب، مكن لدولة الاسلام في البلاد، وافتح لها قلوب العباد، اللهم مد سلطانه وثبت أركانها، واقذف الرعب في قلوب أعداءها، وعجل على يديها تحرير البلاد والعباد يارب العالمين.

مفتي أبو إلياس حنيفي

**١٠ شبعان ١٤٣٦ هـ**